


د پوهنې وزارت

# پښتو

## دريم ټولګی



د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ش.

پښتو ـ دريم ټولګی



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي — پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان

دا هېواد به تل ځلېږي — لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مو دی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# پښتو

## دريم ټولگی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** دریم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګوني بنستيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# فهرست

## لومړی لوست

# قرآن کریم

**موخه:** د متن سم لوستل، ښه لیکل او د قرآن کریم په اړه د زیاتو معلوماتو ترلاسه کول.





**پوښتنه:**

ـ آیا تاسو پوهېږئ چې قرآن کریم په چا نازل شوی دی؟

**قران کریم د الله جل جلاله کتاب دی. یوسلو څوارلس سورتونه او دېرش سپارې لري. پر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نازل شوی دی.**

**موږ مسلمانان پرې ایمان لرو. هر سهار قرآن کریم لولو او په لارښوونو یې عمل کوو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته د لوست متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د متن یوه یوه جمله د ټولګي په مخ کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې له متن څخه دوې دوې کلمې پر تختې ولیکي او نور دې په وار سره هغه معنا کړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د (کتاب، ایمان او سهار کلمې) پر تختې ولیکي او نور دې په تورو ووېشي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| نازل | رالیږل شوی |
| ایمان | باور |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

دویم لوست

# د حضرت محمد ﷺ پېژندنه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د حضرت محمد ﷺ پېژندنه.





**پوښتنې:**

ـ په پورتني انځور کې څه وینئ؟

ـ د حضرت محمد ﷺ په هکله څه ویلای شئ؟

**د حضرت محمد ﷺ د پلار نوم عبدالله او د نیکه نوم يې عبدالمطلب و. حضرت محمد ﷺ د قریشو له قوم څخه و. حضرت محمد ﷺ له کوچنیوالي څخه د ښو اخلاقو خاوند و. حضرت محمد ﷺ په څلوېښت کلنۍ کې پیغمبر شو او قرانکریم وربانديې نازل شوی دی. د پیغمبرانو دنده د انسانانو لارښوونه ده.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن ولولي.

ـ زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه کلمې جوړې کړي.

ح ـض ـ ر ـ ت ( )

ن ـا ـز ـل ( )

پ ـل ـا ـر ( )

ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه په جملو کې استعمال کړي.

خاوند ـ عبدالله ـ قرآنکریم ـ محمد

ـ زده کوونکي دې د خپل ګران پیغمبر، حضرت محمد ﷺ په اړه خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| قریش | د عربو یو قوم دی |
| پیغمبر | استازی، لارښوونکی |



## کورنی دنده:

زده کوونکي دې لاندې جملې په خپلو کتابچو کې پنځه پنځه ځلې ولیکي

حضرت محمد ﷺ د عبدالله زوی دی.

حضرت محمد ﷺ زموږ پیغمبر دی.

## دریم لوست

# حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه پېژندل.





**پوښتنه:**

ــ تاسو د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه نوم اورېدلی دی؟

**حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم لومړی یار و. اصلي نوم یې عبدالله او د پلار نوم یې عثمان و. په نارینه وو کې نوموړی لومړنی صحابي و چې پر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم یې ایمان راوړ. حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په خپلو ټولو کړنو کې صادق و. له دې امله حضرت محمد صلی الله علیه وسلم هغه ته د صدیق لقب ورکړ.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.
ـ زده کوونکي دې د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په هکله یو له بل سره خبرې وکړي.
ـ یو زده کوونکی دې د( صحابي، عثمان، صدیق او لقب) کلمې پر تختې ولیکي او څو نور دې په وار سره د هغو توري وښيي.
ـ څو زده کوونکي دې د خپلو ورځنیو کارونو په اړه خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| یار | ملګری |
| صحابي | د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم یار او هم صحبت |



## کورنی دنده:

ـ زده کوونکي دې متن څو ځلې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د ښوونکي مقام

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل او د ښوونکي په مقام پوهېدل.





**پوښتنې**:

ـ په انځور کې څه وينئ؟
ـ څه فکر کوئ ښوونکی په موږ د چا په شان حق لري؟

**ښوونکی موږ ته ليک او لوست را زده کوي. سمې لارې ته مو رابولي. ښوونکی پر موږ د مور او پلار په شان حق لري. موږ د ښوونکو درناوی کوو او خبرو ته يې غوږ نيسو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته د یو بل په مرسته متن ولولي.
ـ څو زده کوونکي دې د ښوونکي د مقام په اړه خبرې وکړي.
ـ څو زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه کلمې جوړې کړي.

ښ ـ و ـ و ـ ن ـ ك ـ ی ( )

م ـ و ـ ر ( )

پ ـ ل ـ ا ـ ر ( )

ـ یو زده کوونکی دې د (لیك، لوست، درناوی) کلمې پر تختې ولیکي او څو نور دې په وار سره د ښوونکي په مرسته هغه په جملو کې استعمال کړي.
ـ درې زده کوونکي دې د ښوونکي په اړه لنډې خبرې وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| درناوی | احترام |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست د کتاب له مخې څو ځلې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# کیسې

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او له کیسې سره بلدتیا.





**پوښتنه:**

ـ تاسو کومه کیسې اورېدلې ده؟

**هغه څه شی دی؟**

**ټوله ورځ ګرځي، ګرځي؛ چې شپه شي د یوې روپۍ ځای نیسي؟**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته د کیسۍ متن په خپل منځ کې ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي د کیسۍ متن دې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي د کیسۍ یوه یوه جمله دې د تختې پرمخ ولیکي.

ـ یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي او کومه یوه کیسۍ چې یې زده وي ووایي او نور دې ځواب پیدا کړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| کیسۍ | چیستان |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د خپلې کورنۍ د غړو په مرسته یوه کیسۍ ولیکي.

# کتاب

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د کتاب د ارزښت په اړه خبرې کول.






**پوښتنه:**

ـ په پورته انځور کې څه شی وینئ؟

**کتاب زموږ ښه ملګری دی. له لوستلو او لیکلو څخه یې پوهه تر لاسه کیږي. زموږ په کتاب کې ډېر ښه مطلبونه راغلي دي.**

**موږ له خپلو کتابونو سره مینه لرو. خپل کتابونه پاک ساتو. پاڼې یې نه شکوو. موږ په ښوونځي او کور کې خپل درسونه لولو او بیا یې په کتابچو کې لیکو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته پورتنی لوست ولولي.
ـ زده کوونکي دې لاندې جملې ولولي او څو ځلې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي:
ـ دا کتاب دی.
ـ د کتاب لوستل ګټې لري.
ـ ښه ماشومان خپل کتابونه پاک ساتي.
ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د (کتاب، پوهه، پاک او متن) کلمې د تختې پر مخ ولیکي.
ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د (ښوونځي، کتابچې او ساتل) کلمې پر تختې ولیکي او نور دې په لنډو جملو کې استعمال کړي.
ـ څو زده کوونکي دې د کتاب په اړه خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| نه شکوو | نه پرېکوو |
| پوهه | علم |
| مینه | محبت |



## کورنی دنده:

زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه په لاندې کلمو سره ډک کړي:
ګټور ـ پاک ـ ښه
ـ موږ خپل کتابونه (      ) ساتو.
ـ کتاب زموږ (      ) ملګری دی.
ـ د کتاب لوستل (      ) کار دی.

## اووم لوست

# قلم

**موخه:** د متن سم لوستل، ښه لیکل او د قلم په اهمیت پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ په انځور کې څه وینئ؟

**قلم د لیکلو وسیله ده. موږ په قلم لیکل کوو. قلم ډېر ډولونه لري، لکه: د کرکي، پنسل، خودرنګ، خودکار او توش قلمونه.**

**څوک چې د کرکي په قلم لیکل کوي، لیک یې ښکلی کیږي.**

**موږ ډېر لیکل کوو چې لیک مو ښکلی شي.**

**د قلم په واسطه د انسان فکر، خیال او پوهه کتابونو ته لیږدول کیږي او نورو ته رسیږي.**



## فعالیتونه:

ـ څو زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته لوست ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې لاندې کلمې په لنډو جملو کې استعمال کړي.

قلم – کرکی – پنسل – خودکار – لیکل

ـ زده کوونکي دې له لاندېنیو تورو څخه کلمې جوړې کړي.

ق ـ ل ـ م (       )، ك ـ ړ ـ ك ـ ی (          )، پ ـ ن ـ س ـ ل(          ).

ـ یو زده کوونکی دې د (قلم، ښکلی، خودرنګ) کلمې پر تختې ولیکي بل دې هغه په لنډو جملو کې استعمال کړي.

ـ څو زده کوونکي دې د قلم په اړه لنډې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| وسیله | واسطه |
| ښکلی | ښایسته |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې څو ځلې په کور کې لوست ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# لوبې

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د ګډورو لوبو پېژندل.





**پوښتنه:**

ـ په انځورونو کې څه وینئ؟

**ماشومان ډول ډول لوبې کوي، لکه: اکوبکو، خوسی، رسۍ کشول، پټ پټانی، نانځکې، ټال او داسې نور. د بېلګې په ډول د رسۍ کشولو لوبه در پېژنو:**

**د رسۍ کشولو لوبه د دوو ډلو تر منځ سرته رسیږي. هرې ډلې، چې رسۍ خپلې خوا ته ډېره کش کړه هماغه ډله ګټونکې ده. په دې باید وپوهېږو چې لوبې کول روغتیا ته ګټه رسوي.**



## فعالیتونه:

ـ څو زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته  په وارسره په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي او متن دې په لوړ غږ ولولي، نور دې وریسې تکرار کړي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې معنا او بیا دې په کتابچو کې ولیکي.

ـ رسۍ ـ لوبه ـ ټال ـ کش

ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. د رسۍ کشولو لوبه دې د لوبو په میدان کې په عملي توګه تر سره کړي.

ـ یو زده کوونکی دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي او د (ماشومان، نانځکې، خوسۍ) کلمې دې د تختې پر مخ ولیکي، بل دې معنا او نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، یوه لوبه دې نورو ته وروپیژني.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| پټ پټانی | د یوې سمیزې لوبې نوم، کلیوالي لوبه. |
| نانځکه | ګډۍ |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست ولولي او بیا دې په ښکلي خط ولیکي.

# بې پروايي

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل او د بې پروايي په معنا او مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ څه فکر کوئ بې پروايي د څه شي لامل کېږي؟

**احمد د مور، پلار او ښوونکي لارښوونو ته پاملرنه نه کوله. تل به يې د سړک ترڅنګ لوبې کولې، يوه ورځ يې په لوبو کې توپ په سړک کې ولوېد، احمد د سړک په منځ کې په توپ پسې منډې وهلې، چې موټر راغی، هغه يې وواهه، خلک پرې راټول شول او هغه يې روغتون ته يووړ، روغتون کې څرګنده شوه چې احمد يوه پښه ژوبله شوې وه.**

**موږ بايد د لوبو ځايونه وپيژنو، د مور، پلار او ښوونکي لارښوونو ته پاملرنه وکړو.**



## فعالیتونه:

ـ یو زده کوونکی دې له ښوونکي څخه وروسته متن په لوړ او مناسب غږ ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي په وار سره دې د بې پروايي په اړه یوه یوه جمله پر تختې ولیکي، نور زده کوونکي دې په کتابچو کې ولیکي.

ـ یو زده کوونکی د (روغتون، توپ، موټر، منځ) کلمې پر تختې ولیکي نور دې په وار سره په جملو کې وکاروي.

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د بې پروايي په اړه دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| پاملرنه | توجه |
| روغتون | شفاخانه |
| ژوبله | خوږه (ټپي) |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې د بې پروايۍ په باب څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د مور درناوی

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د مور د لوړ مقام پېژندل.





**پوښتنه:**

ـ تاسې په انځور کې څه وینئ؟

**مور یو ښکلی او خوږ نوم دی. مور په هر چا گرانه وي.**
**مور له خپلې مور سره مینه لرو. څکه چې مور یې له ډېرو ستونزو سره پاللي او لوی کړي یو.**
**خبره یې منو او درناوی یې پر موږ لازم دی.**



## فعالیتونه:

ـ یو زده کوونکی دې له ښوونکي څخه وروسته متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په ډلو کې د مور د درناوي په اړه یو له بل سره خبرې وکړي.

ـ که د مور په کلمه کې د (م) توري پر ځای د (خ) یا (ك) توری راشي کومې کلمې ترې جوړیږي؟

ـ یو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي د (مور، درناوی، ګرانه) کلمې دې پرتختې ولیکي او نور دې هغه په جملو کې وکاروي.

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګیوالو په وړاندې د مور په اړه لنډې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ستونزو | مشکلات |
| درناوی | احترام |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# لیک او لوست

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل د لیک او لوست په ارزښت او ګټو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ څه فکر کوئ چې لیک او لوست څه ګټې لري؟

**لیک او لوست د پوهې کیلي ده. د اسلام مقدس دین هم د علم او پوهې زده کړه په نارینه او ښځو فرض کړې ده.**

**یو هېواد هغه وخت ترقۍ او سوکالۍ ته رسېږي چې د هغه وګړي د لیک او لوست خاوندان وي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د لیک او لوست په اړه دې خبرې وکړي.

ـ یو زده کوونکی دې د (لیک، لوست، کار) کلمې پرتختې ولیکي، نور زده کوونکي دې په وار سره یوه یوه کلمه په لنډو جملو کې استعمال کړي.

ـ زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته لاندې فعالیت تر سره کړي:

که د کار په کلمه کې د ((ک)) توري پر ځای د ((ت)) توری او د لیک په کلمه کې د ((ل)) توري پر ځای د ((ټ)) توری راشي، کومې کلمې ورڅخه جوړیږي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| وګړي | خلک |
| سوکالي | آبادي |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لیک او لوست په هکله څلور جملې ولیکي.

# د خبرو کولو آداب

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د خبرو کولو په آدابو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ ستاسو په فکر د خبرو کولو آداب کوم دي؟

**ملالۍ ښه نجلۍ ده. کله چې ټولګي ته راشي، ټولو ته سلام اچوي. د خبرو کولو پر مهال وار په پام کې نیسي. د نورو خبرو ته غوږ نیسي. خپل مطلب په لنډو او خوږو جملو کې بیانوي. ملالۍ پر خپلو ټولګیوالو او ښوونکو ګرانه ده.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.
ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي نوی لوست دې په مناسب غږ ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
ـ یو زده کوونکی دې په خپله خوښه د تختې مخې ته راشي د (سلام، خپل، غوږ او ټولګي) کلمې دې پرتختې ولیکي او نور دې یوه یوه کلمه په لنډو جملو کې استعمال کړي.
ـ څو زده کوونکي دې په وار سره له لاندې تورو څخه کلمې جوړې کړي او نور دې ولولي:

ن ـ ج ـ ل ـ ی ( ) پ ـ ا ـ م ( )
س ـ ل ـ ا ـ م ( ) ګ ـ ر ـ ا ـ ن ـ ه ( )
م ـ ل ـ ا ـ ل ـ ی ( )

ـ څو زده کوونکي دې د خبرو کولو د آدابو په اړه خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| پام | فکر |
| سلام اچوي | سلام ورکوي |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست څو ځلې په کور کې له ځان سره ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

دیارلسم لوست

# خواخوږي

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د خواخوږي په مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ ستاسو په نظرخواخوږي څه ته وايي؟

**خواخوږي يو انساني او اسلامي صفت دی.**

**ښه زده کوونکي يو له بل سره خواخوږي لري، له اړو کسانو سره مرسته کوي.**

**موږ بايد له انسانانو سره خواخوږي او پر حيواناتو زړه سوی ولرو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې متن د ټولګیوالو په وړاندې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ یو زده کوونکی دې د (خواخوږی، زړه سوي، خوشحالی) کلمې پرتختې ولیکي او نور دې یوه یوه کلمه په جملو کې استعمال کړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره پر حیواناتو باندې د زړه سوي په اړه لنډې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| خواخوږي | زړه سوی |
| اړو | محتاجو |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې نوی متن په کورونو کې ولولي او په خپلو کتابچو کې دې په ښکلي خط ولیکي.

# روغه جوړه

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل او د روغې جوړې په مفهوم او اهميت پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ ستاسو په فکر روغه جوړه څه ته وايي؟

**د دوو مخالفو ډلو يا خواوو پخلاکولو ته روغه جوړه وايي. کله کله د خلکو ترمنځ خپګان پيدا کيږي. که خپګان اوږد شي، په دښمنۍ اوړي. بايد خپګان اوږدېدو ته پرې نه ښودل شي. روغه جوړه په ټولنه کې سوله، يووالی او نيکمرغي راولي. د اسلام مبارک دين مسلمانانو ته د روغې جوړې لارښوونه کوي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ یو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي، د (روغې، جوړې، اسلام او سوله) کلمې دې پر تختې ولیکي او نور دې یوه یوه کلمه په جملو کې استعمال کړي.

ـ څو زده کوونکي دې په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د روغې جوړې د ګټو په اړه دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| یووالی | اتحاد - یو موټی کېدل |
| ټولنه | جامعه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست ولولي او بیا دې څو ځلې په خپلو کتابچوکې په ښکلي خط ولیکي.

# ماینونه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د ماینونو په زیانونو پوهېدل.






**پوښتنې:**

ـ په پورته انځورکې څه وینئ؟

ـ تاسې ماینونه لیدلي او هغه پیژنئ؟

**ماین زمونږ پټ دښمن دی. ماینونه تل د مرگ او ژوبلې سبب گرځي.**

**ماینونه د قلم، ساعت، موبایل او د لوبو د شیانو په څېر جوړ شوي دي.**

**له دې امله ناپېژندل شوو شیانو ته باید لاس ورنه وړو.**

**د ماین د لیدلو پر وخت باید مشرانو ته خبر ورکړو.**



## فعالیتونه:

ـ څو زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په وار سره متن د ټولګي په مخ کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې په څو ډلو وویشل شي. له هرې ډلې څخه دې یو یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راشي او د ماینونو په اړه دې خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې لاندې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي او تش ځایونه دې په مناسبو کلمو ډک کړي (ډولونه، زموږ، شیانو، پټ).

ـ ماین .......... دښمن دی.

ـ تاسې باید ناپېژندل شوو .......... ته ګوتې ورنه وړئ.

ـ ماین بېلابېل .......... لري.

ـ څو زده کوونکي دې د ماینونو په اړه خپل معلومات نورو ته وړاندې کړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| تل | همیشه |
| په څېر | په ډول |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن څو ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

شپاړسم لوست

# ترافيکي لارښوونې

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل او د ترافيکي اشارو پېژندل او مراعتول.





**پوښتنه:**

ـ په پورتنيو انځورونو کې څه وينئ؟

**په ښارونو کې ترافيکي ګڼه ګوڼه وي، که تاسو ښار ته ولاړئ، له سړک څخه د تېرېدو پرمهال ترافيکي نښو ته پاملرنه وکړئ، که ترافيکي نښه شنه وه، لومړی ښي او کيڼ پلو ته وګورئ او له سړک څخه په ټاکلي ځای کې تېر شئ، د سړک په منځ کې مه درېږئ او منډې مه وهئ. ترافيکي لارښوونو ته پاملرنه له پېښو مخنيوی کوي او انسانان له خطر څخه ژغوري.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د ترافیکي اشارو په هکله خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې په جملو کې استعمال کړي.
(ځای، ښار، پاملرنه، خطر).

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او له سړک څخه د تیریدو پر مهال دې د ترافیکي نښو په اړه خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| پاملرنه | توجه |
| مهال | وخت |
| کیڼ | چپ |
| مخنیوی | مخه نیول |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست څو ځلې په کور کې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# روغتیا

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، او روغتیا ته پاملرنه.





**پوښتنه:**

ـ ستاسو په فکر روغتیا څه ته وايي؟

**زمـا روغـتـیا خـوښـه ده　　تـــازه هـــوا خــوښـه ده**

**لــوبــې مـســتــې کـومـه　　زمــا ښـکـلا خــوښـه ده**

**ځکه ځــان پــاک ساتمه　　حـــد د خـــوراک ساتمه**

**ځـکـه خـوشـحـالـه یمه　　خـلاص لـه جنجالـه یمه**

اروانباد غلام حضرت روغمن



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په وار سره متن ولولي.

ـ زده کوونکي دې د خپل ځان د پاکوالي په اړه په وار سره خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې د (هوا، پاك، ښکلا، روغتیا) کلمې په خپلو کتابچو کې په تورو واړوي.

ـ ځو زده کوونکي دې لاندې کلمې په لنډو جملو کې وکاروي:

روغتیا، ښکلا، خوراك، لوبې

ـ زده کوونکي دې د بیتونو خالي ځایونه پر مناسبو کلمو ډك کړي.

زما.......... خوښه ده.

تازه هوا........... ده.

ـ ځو زده کوونکي دې په خپله خوښه پورته شعر په ښکلي غږ ولولي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| روغتیا | صحت |
| حد | اندازه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې پورتنی شعر په خپلو کتابچو کې ولیکي او په یاد دې زده کړي.

# متلونه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د متلونو په مفهوم پوهېدل.






**پوښتنه:**

ـ ستاسو په فکر متلونه څه اهمیت لري؟

## خپل عمل د لارې مل.

## څه چې کرې، هغه به رېبې.

## لږ خوره، تل خوره.



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متلونه په خپل منځ کې ولولي.
ـ څو زده کوونکي دې په وار سره یو یو متل د کتاب له مخې ولولي.
ـ څو زده کوونکي دې یو یو متل ولولي او د هغه په اړه دې خبرې وکړي.
ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي هر یو دې یو یو متل ووایي.
ـ څو زده کوونکي دې (مل، کرې) کلمې د تختې پر مخ په جملو کې وکاروي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| مل | ملګری |
| ربړې | لوکول |
| کرې | کښت |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې درې درې متلونه ولیکي او بله ورځ دې ټولګیوالو ته ووایي.

# د ناروغۍ رقعه

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل او د ناروغۍ د رقعې په ليکلو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ د ناروغۍ پرمهال ښوونځي ته څنګه خبر ورکوئ؟

**د میرویس نیکه د ښوونځي محترم مدير صاحب!**

**السلام عليكم ورحمة الله وبركاته!**

**زه ستورۍ د اجمل لور د درېم (ب) ټولګي زده کوونکې يم، نن د ناروغۍ له امله ښوونځي ته نه شم درتلای هيله منه يم چې ناسوبه ونه شمېرل شم.**

**په درناوي**

**ستورۍ**

۱۳۹۴/۶/۴



**فعالیتونه:**

ــ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته د ناروغۍ رقعه له ځان سره ولولي.

ــ زده کوونکي دې یو بل ته د ناروغۍ د رقعې املا ووایي.

ــ زده کوونکي دې د ناروغۍ رقعه په یاد زده کړي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

ــ څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي د (ناروغۍ، ستورۍ، لور) کلمې دې پر تختې ولیکي او نور دې په جملو کې وکاروي.

| **لغتونه** | **معناوې** |
| --- | --- |
| هیله | امید |
| ناسوب | غیر حاضر |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د ښوونځي ادارې ته په خپل نوم د ناروغۍ رقعه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# پاکه هوا او پاکې اوبه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د پاکې هوا او  د پاکو اوبو په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ ستاسو په نظر پاکه هوا او پاکې اوبه انسانانو ته څه ګټې لري؟

**انسانان، ځاروي او بوټي پاکو اوبو او هوا ته اړتیا لري، له اوبو او هوا پرته ژوند نه کیږي، ناولې اوبه او هوا روغتیا ته زیان رسوي، باید د ناپاکو اوبو له څښلو او ککړې هوا له تنفس څخه ځانونه وساتو، چې ناروغه نه شو.**



## فعالیتونه:

ــ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته نوی متن له ځان سره ولولي.
ــ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، یو دې له کتاب څخه یوه جمله ووایي او بل دې پر تختې ولیکي.

ــ زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه کلمې جوړې کړي.
ر ــ و ــ غ ــ ت ــ ی ــ ا (        )، هـ ــ و ــ ا (        )، ب ــ و ــ ټ ــ ي (        )

ــ زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او لاندې کلمې دې په جملو کې وکاروي. (اړتیا، هوا، اوبه، کار).
ــ څو زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي په وړاندې د ناپاکې هوا او اوبو په اړه خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| اړتیا | ضرورت |
| ناولې | ناپاك |
| ککړې | ناپاکې- آلوده |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د لوست متن ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# کیسه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د رښتیا په ګټو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ ستاسو په نظر رښتیا او صداقت کومې ګټې لري؟

**یوه هلک په بازار کې قلمونه خرڅول. د یوه قلم بیه پنځه افغانۍ وه.**
**یوه سړي یو قلم واخیست. د پنځو افغانیو پرځای یې لس افغانۍ ورکړې او روان شو. د هلک دې ټکي ته پام شو چې هغه سړي لس افغانۍ ورکړې دي. هلک په منډه ور پسې ورغی. پنځه افغانۍ یې بېرته ورکړې. اخیستونکي ترې مننه وکړه، ورته ویې ویل: شاباس! یو ښه هلک باید ستا په شان صادق او رښتینی واوسي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، په وار سره دې متن د ټولګي په وړاندې ولولي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې د تختې پرمخ په جملو کې وکاروي.

پام، منېړه، اخیستل، خرڅول

ـ څو زده کوونکي دې د رښتیا او صداقت په اړه خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| منېړه | ځغاسته، تېښته |
| خرڅول | پلورل |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د نن ورځې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د کور په کارونو کې مرسته

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د خبرو کولو وړتیا پیدا کول.





**پوښتنه:**

ـ تاسې له چا سره مرسته کړې ده؟

**زرغونه او احمد خور او ورور دي. دواړه په ښوونځي کې زده کړې کوي. کله چې له ښوونځي څخه کور ته راشي له ډوډۍ خوړلو وروسته له مور او پلار سره د کور په کارونو کې برخه اخلي. د دوی د ګډ کار له امله ټوله کورنۍ خوښ او نیکمرغه ژوند کوي.**

**ښه زده کوونکي هغه دي چې د کور په کارونو کې له مور او پلار سره مرسته وکړي.**



## فعالیتونه:

ــ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته د لوست متن له ځان سره ولولي.

ــ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د لوست مطلب دې په خپله ژبه ووايي.

ــ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، یو دې له کتاب څخه څو کلمې د املا په توګه ووايي او بل دې پرتختې ولیکي.

ــ څو زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د مرستې په اړه خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| نېکمرغه | خوشبخته |
| مرسته | کومک |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د نن ورځې لوست د کتاب له مخې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# د چاپېريال ساتنه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د چاپېریال ساتنې په گټو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ ستاسو په فکر د چاپیریال پاك ساتل څه گټې لري؟

**د کور له انگړ څخه نیولې تر ښوونځي او زموږ د لوبو ځایونه زموږ چاپیریال دی.**
**په چاپېریال کې اوبه، هوا، باغونه، سیندونه، ځنگلونه، دښتې او غرونه شامل دي.**
**که چاپیریال پاک او ښکلی و، زموږ ژوند به سم او روغتیا به مو ښه وي. موږ باید د چاپیریال په پاك ساتلو کې زیار وباسو. ونې او گلان وکرو، د ونو ښاخونه مات نه کړو. د کور خځلې او کاغذونه په یوه ټاکلي ځای کې واچوو. که دا کارونه مو سرته ورسول، نو زموږ چاپیریال به پاک وي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته د لوست متن له ځان سره ولولي.

ـ زده کوونکي دې یو بل ته د لوستل شوي متن څو کلمې املاء ووايي او نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د (چاپېریال، پاك، روغتیا) کلمې په جملو کې وکاروي.

ـ څو زده کوونکي دې د ناپاکو شیانو د بې ځایه اچولو په اړه خبرې وکړي.

ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه په وار سره ووايي چې خپل شاوخوا چاپیریال څنگه پاك ساتلای شي؟

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| انگړ | حویلي |
| زیار | کوښښ |
| ښاخونه | څانگې |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د چاپیریال په اړه څو جملې ولیکي.

## خلورويشتم لوست

# د غاښونو ساتنه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د غاښونو د ساتلو په ګټو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ په پورتني انځورکې څه شی وینئ؟

**غاښونه د انسان د ښکلا او د خوړو د ژوولو ښه وسیله ده.**
**د دې لپاره چې غاښونه مو خراب نشي، نو په غاښونو کلک شیان نه ماتوو.**
**هر سهار او ماښام خپل غاښونه په مسواک یا برس مینځو.**
**که غاښونه مو وخوږېږي، د غاښونو ډاکټر ته ځو. اړینه ده چې خپل غاښونه پاک وساتو، ترڅو د غاښونو په درد اخته نشو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته له ځان سره متن ولولي.

ـ یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي، د (کلک، ښکلا، غاښونه) کلمې دې پر تختې ولیکي او نور دې په وار سره په جملو کې وکاروي.

ـ یو زده کوونکی دې له متن څخه څو جملې ولولي او نور دې د املا په توګه ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د غاښونو د پاک ساتلو په اړه دې خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ زده کوونکي دې سوچ وکړي، چې که د (ماښام) کلمه سرچپه شي، څه شی ترې جوړیږي. بیا دې یو تن د نورو په استازیتوب د تختې پر مخ ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| خواړه | غذا |
| ژوولو | میده کولو |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د غاښونو د ساتلو د ګټو په هکله څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## پنځه ویشتم لوست

# زموږ هېواد

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، د خپل هېواد پېژندل او له هغه سره مینه لرل.





**پوښتنه:**

ـ په پورتني انځور کې څه وینئ؟

**زموږ هېواد افغانستان دی. زموږ هېواد لوړ غرونه، ګڼ ځنګلونه، ودانې ځمکې او ښکلي باغونه لري. زموږ په هېواد کې هر ډول غلې، دانې او مېوې کرل کېږي.**

**پر موږ خپل هېواد ډېر ګران دی. باید خپل هېواد په علم او پوهې سره ودان کړو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د متن یوه یوه جمله دې ولولي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ یو زده کوونکی دې د (هېواد، غرونه، باغونه) کلمې د تختې پرمخ ولیکي او نور زده کوونکي دې په وارسره په جملو کې وکاروي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې دوې جملې د املا په توګه ووایي او بل دې ولیکي.

ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي په مخ کې د هېواد په اړه لنډې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| لوړ | جګ |
| ودان | آباد |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې په ښکلي خط ولیکي.

شپږ ویشتم لوست

# د ښوونځي آداب

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، د ښوونځي په آدابو پوهېدل او د هغو مراعاتول.





**پوښتنه:**

ستاسو په فکر د ښوونځي آداب څه ته وايي؟

**ښوونځی د ښوونې او روزنې ځای دی. د ښې زده کړې لپاره باید زده کوونکي پر خپل وخت ښوونځي ته راشي، ښوونځي او ټولګي ته د ننوتلو په وخت نوبت په پام کې ونیسي.**

**د ښوونکو درناوی وکړي. ټولګی او د ښوونځي انګړ پاک وساتي.**

**خپل لوست ښه ولولي. کورنۍ دنده سرته ورسوي. تر څو خلکو او هېواد ته ښه خدمت وکړای شي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د ښوونځي د آدابو په اړه دې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د تختې مخې ته راشي، یو تن دې ورته د کتاب له مخې څو لغتونه د املا په توګه ووايي او بل دې د تختې پرمخ ولیکي.

ـ یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي د: (آداب، ښوونځي، انګړ) کلمې دې پرتختې ولیکي او نور دې په خپلو کتابچو کې ورته جملې جوړې کړي.

ـ دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او په وار سره دې ووايي، چې په ښوونځي کې کوم کارونه سرته رسوي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| درناوی | احترام |
| انګړ | حویلۍ |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې نوی لوست په کور کې ولولي او بیا دې په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# سوله

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل او د سولې په اهميت پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ ستاسو په فکر سوله څه ته وايي؟

**سوله نېکمرغي راولي. په سوله کې ژوند خوږ وي. ښوونځي پرانيستي وي، ماشومان خوشحاله او ښوونځي ته ځي. په سوله کې امن را منځته کېږي او هېواد پرمختګ کوي.**

**زما سوله خوښېږي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې د لوست متن د ټولګي مخې ته په لوړ غږ ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته د سولې ګټې بیان کړي.

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د (سوله، نېکمرغي، ژوند) کلمې دې په جملو کې وکاروي او بیا دې یوه، یوه جمله په تختې ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| پرانیستي | خلاص |
| امن | آرامي |
| پرمختګ | ترقي |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د سولې ګټې ولیکي.

# پندونه

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل او د پندونو په اهميت پوهېدل او په ژوند کې عملي کول





**پوښتنه:**

ستاسو په فکر پندونه څه ګټې لري؟

**ښه ماشومان پندونو او ښو خبرو ته غوږ نيسي.**

**د مور، پلار او ښوونکي د پندونو اورېدل ښه کار دی.**

**څوک چې د مشرانو په پندونو عمل کوي له خپلو کړنو څخه نه پښېمانېږي.**

**د ښو پندونو اورېدل انسان نيکمرغه کوي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته پندونه له ځان سره ولولي.

ـ څو زده‌کوونکي دې د پندونو په مطلب د ټولګي په مخ کې لنډې خبرې وکړي.

ـ څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې د املا په توګه د (ښه، انسان او نېکمرغه) کلمې ووايي او بل دې پرتختې ولیکي.

ـ څو نور زده کوونکي دې په خپله خوښه د تختې مخې ته راشي، پر تختې لیکل شوې کلمې دې په جملو کې استعمال کړي.

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي که کوم پند یې زده وي نورو ته دې ووايي.

| **لغتونه** | **معناوې** |
|---|---|
| پندونه | نصیحتونه |
| مشرانو | لویانو |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د کتاب پندونه په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي او په یاد دې زده کړي.

# د ماشومانو ترمنځ ښې اړیکې

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د ماشومانو د ښو اړیکو په ښېګڼو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ستاسو په فکر د ماشومانو نه څورول څه ګټې لري؟

**ماشومان یو د بل خویندې او وروڼه دي. دوی باید په خپل کور، کلي او ښوونځي کې یو بل سره ښې اړیکې ولري. د ماشومانو په خوشحالولو له مور، څخه الله ﷻ راضي کیږي مور، پلار او نور خلک خوشحالیږي. ماشومان باید هر وخت یو له بل سره مرسته وکړي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته د نوي لوست متن په خپلو منځو کې ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې تختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې د املا په توګه څو کلمې ووايي او بل دې پرتختې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې د (ښې اړیکې، خویندې، ښوونکي) کلمې پرتختې ولیکي او نور دې په وارسره یوه یوه کلمه په جملو کې وکاروي.

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د ماشومانو د ښو اړیکو په هکله دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| اړیکې | رابطې |
| ماشومان | کوچنیان |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن څو ځلې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# یووالی

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د یووالي په گټو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ستاسو په فکر یووالی څه گټې لري؟

**د خلکو یو موټي کېدلو ته یووالی وايي. الله جل جلاله په یووالي رضا کېږي او خپلو بندگانو ته د یووالي امر کوي.**

**د هېواد خپلواکي په یووالي ساتل کېږي.**

**د خلکو یووالی سوله منځ ته راوړي. په یووالي هېواد ودانېږي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې لاندې کلمې په جملو کې وکاروي:

(هېواد، خپلواکي، سوله)

ـ یو زده کوونکی دې د (سوله، یووالی او هېواد) کلمې پرتختې ولیکي، څو نور دې په وار سره په جملو کې وکاروي.

ـ زده کوونکي دې له متن څخه هغه کلمې پیدا کړي چې (و) پکې راغلی وي، بیا دې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې د یووالي په اړه لنډې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| یووالی | یو موټی کېدل، اتحاد |
| هېواد | وطن |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# اوړی

**موخه:** د متن لوستل، سم لیکل، د اوړي د موسم پېژندل.





**پوښتنه:**

ـ ستاسو په نظر اوړی د کال څووم فصل دی؟

**اوړی د کال دویم فصل دی. دا فصل هم لکه پسرلی درې میاشتې لري. د میاشتو نومونه یې (چنګاښ، زمری، وږی) دي. په اوړي کې هوا ډېره توده وي، غلې او مېوې پخېږي. زده کوونکي دې د اوړي په تودې هوا کې له اړتیا پرته نه ګرځي، له لمر څخه دې ځانونه وساتي چې ناروغ نشي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي، بیا دې څو زده کوونکي په وارسره د اوړي په اړه خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې د اوړي د میاشتو نومونه د کتاب له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

ـ زده کوونکي دې له لاندې تورو څخه کلمې جوړې کړي:

ف ـ ص ـ ل (     )، چ ـ ن ـ گ ـ ا ـ ښ (     )، ز ـ م ـ ر ـ ی (     )

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره لاندې کلمې د تختې پرمخ په جملو کې وکاروي:

(پسرلی، اوړی، مېوې، ناروغ)

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| چنگاښ | سرطان |
| زمری | اسد |
| وږی | سنبله |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د هغو مېوو نومونه ولیکي چې په دې موسم کې پخېږي.

دوه دېرشم لوست

# د ونو ګټې

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل د ونو په ګټو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ستاسو په نظر ونې کومې ګټې لري؟

**ونې له ژوندیو موجوداتو څخه دي. د ونو وچې او تازه مېوې خوړل کېږي او له لرګیو څخه یې د ودانیو په جوړولو کې کار اخیستل کېږي. ونې د چاپېریال په ښکلا او د هوا په پاکوالي ډېره اغېزه لري. هر څوک باید د خپل چاپېریال د سمسورتیا او ښکلا لپاره ونې کینوي او ښه پالنه یې وکړي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې د ونو پر ګټو خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونيسي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي او بيا دې په تورو وويشي.

ونې ـ پالنه ـ چاپېريال ـ ښکلا.

ـ يو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي د (تازه، سمسورتيا، اغېزه) کلمې دې پر تختې وليکي او نور زده کوونکي دې يوه يوه کلمه د تختې پرمخ په جملو کې وکاروي.

ـ زده کوونکی دې له متن څخه لاندې جملې بشپړې کړي.

ونې له ژونديو .................... څخه دي.

ونې د چاپېريال په ښکلا او د هوا په پاکوالی .................... لري.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| اغېزه | تاثير |
| ښکلا | ښايست |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لوست په ښکلي خط وليکي.

# د وخت ارزښت

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل، د وخت په ارزښت پوهېدل.






**پوښتنه:**

ستاسو په فکر وخت څه ارزښت لري؟

**هرې شيبې ته وخت وايي. وخت له سرو زرو څخه زيات ارزښت لري. موږ بايد خپل ارزښتمن وخت بې ځايه تېر نه کړو. زده کړې وکړو، له مور او پلار سره په کارونو کې مرسته وکړو او خپلې ورځنۍ چارې په ټاکلي وخت تر سره کړو. چې خپلې کورنۍ، ټولنې او ټولو انسانانو ته د خدمت وړ وګرځو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن ولولي بیا دې یو تن د ټولګي مخې ته راشي او د لوست په اړه دې خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې لاندې کلمې په جملو کې وکاروي.
(مرسته- وخت- ارزښت- ورځنۍ)

ـ یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي د (کورنۍ، مور، پلار او خدمت) کلمې دې پر تختې ولیکي او څو نور دې په وار سره یوه یوه کلمه د تختې پرمخ په هیجا ووېشي او نور دې ورته پاملرنه وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| مرسته | کومک |
| شېبې | د وخت ډېرې لږې اندازې ته ویل کېږي، لحظه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست په کور کې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# ژوند او کار

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، د کار په گټو او ارزښت پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ ستاسو په فکر کار کول څه گټې لري؟

**ژوند د لوی الله ﷻ ښه نعمت دی. د ژوند د پایښت او ښه والي لپاره کار ته اړتیا ده. بې کاره ژوند معنا نه لري. هر څوک باید کار وکړي. هېڅوک باید خپل وخت وزگار تېر نه کړي. ځکه چې د یوه هېواد جوړونه او پرمختگ په ښوونه، روزنه، کار او زیار پورې اړه لري.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره نوی لوست په لوړ غږ ولولي.

ـ یو زده کوونکی دې د (نعمت، وخت، هېواد، ژوند) کلمې پرتختې ولیکي او نور دې په جملو کې وکاروي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي د لوست په اړه دې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ یو زده کوونکی دې د متن یوه جمله د املا په توګه ووایي او نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| زیار | کوښښ، زحمت |
| پرمختګ | ترقي |
| پایښت | بقا، ژوندي پاتې کېدل |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست په کور کې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# بزګر

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د بزګر د کار  او زیار په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ ستاسو په فکر د بزګر کار څه ارزښت لري؟

**انسانان، څاروي او مرغان د ژوند کولو لپاره خوړو ته اړتیا لري.**

**بزګران موږ ته غنم، جوار، وریژې، سابه او داسې نورې غلې، دانې کري. د بزګرانو د زیار له برکته موږ خپل خوراکي توکي او نورې اړتیاوې ترلاسه کوو. باید د بزګرانو درناوی وکړو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي لوست دې په لوړ غږ ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي یو دې د کتاب له مخې څو کلمې د املا په توګه ووایي، نور دې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې د بزګرۍ په اړه لنډې خبرې وکړي.

| **لغتونه** | **معناوې** |
|---|---|
| څاروي | حیوانات |
| توکي | شیان |
| اړتیاوې | ضرورت |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن په کور کې ولولي او بیا دې په ښکلي خط ولیکي.

# ترکاڼ

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او ترکاڼۍ د کسب په ارزښت پوهېدل.





**پوښتنې:**

ـ په پورتنۍ انځور کې څه وینئ؟

ـ ستاسو په فکر ترکاڼ له لرګیو څخه کوم شیان جوړوي؟

**ترکاڼي ډېر ښه کسب دی. ترکاڼ ته ټول خلک اړتیا لري. د اجمل مشر ورور ترکاڼ دی. هغه په خپلې ارې، ترښځې، رندې، برمې او سکنې باندې ښکلي او ګټور شیان، لکه: رایلونه، میزونه، څوکۍ، دروازې، الماري، کړکۍ، کټونه، سپارې او مالې جوړوي. موږ باید د ترکاڼ درناوی وکړو، ځکه چې د هغه ګټه او خیر ټولنې او خلکو ته رسېږي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.
ـ ځو زده کوونکي دې په وار سره د ترکاڼۍ د کسب په اړه خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
ـ زده کوونکي دې د جملو تش ځایونه په لاندې کلمو ډک کړي:

**(ورور، ښه، خلک، اړتیا)**

ـ ترکاڼي ډېر (            ) کسب دی.
ـ ترکاڼ ته ټول (            ) اړتیا لري.
ـ د اجمل (            ) ترکاڼ دی.

ـ ځو زده کوونکي دې د (ترکاڼ، اجمل، برمه، ځوکۍ) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې راوړي.
ـ ځو زده کوونکي دې په ټولنه کې د ترکاڼۍ په اړه لنډې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| ترکاڼ | نجار |
| کسب | مسلک |
| تربښځ | تیشه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# برېښنا

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل، د برېښنا په گټو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ ستاسو په فکر له برېښنا څخه کومې گټې اخيستل کېږي؟

**له برېښنا څخه د ژوند په ډېرو برخو کې کار اخيستل کېږي. کورونه روښانه او تودوي. موږ له راډيو، ټلوېزيون، کمپيوټر، يخچال او نورو برقي وسايلو څخه هم د برېښنا په وسيله کار اخيستلای شو. موږ بايد د برېښنا له بې ځايه لگښت څخه مخنيوی وکړو. برېښنا ځينې خطرونه هم لري. که چېرې له برېښنا سره بې پروايي وشي، د مړينې لامل گرځي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.
ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې نوی متن په لوړ او مناسب غږ ولولي.

ـ يو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي د (برېښنا، اوبه، راډيو او ښار) کلمې دې د تختې پرمخ وليکي او نور دې په وار سره له يوې يوې کلمې څخه په خپلو کتابچو کې جملې جوړې کړي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د برېښنا د ګټو په هکله دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| برېښنا | برق |
| لامل | سبب، علت |
| لګښت | مصرف |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې نوی لوست په کور کې ولولي او بيا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط وليکي.

# تلېفون

**موخه:** د متن سم لوستل، ليكل او د تلېفون په ګټو پوهېدل.







**پوښتنه:**

تاسې كله په تلېفون كې خبرې كړې دي؟

**تلېفون د اړيكو ټينګولو وسيله ده. د لومړي ځل لپاره د ګراهامبل له خوا اختراع شو، تلېفون ډېر ډولونه لري. تر ټولو ښه يې مبايل دی. زموږ په هېواد كې له ټولو ډولونو څخه ګرځنده تلېفون زيات كارول كېږي.**

**موږ ته په كار ده چې له تلېفون څخه سمه ګټه واخلو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن په خپلو منځونو کې ولولي.
ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د تختې مخې ته راشي، نوی لوست دې په لوړ او مناسب غږ ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي د (مبایل، تلېفون او ګټه) کلمې دې په جملو کې وکاروي.
ـ څو زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي، د تلېفون د سمې کارونې په هکله دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| اختراع | دیوه نوي شي منځته راوړل |
| ګرځنده | سیار |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې (تلېفون، چټک، وسیله ) کلمې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي.

# ترانه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د ترانې په مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ تاسو کوم وخت په ډله ییزه توګه ترانه ویلې ده؟

**دا زمــوږ ښکلی وطن**
**دا وطــن مــو ځــان دی**
**وایــي پــه خــاپــوړو کې**
**دا مــو د دادا وطن**

**دا زمــوږ لــیلا وطــن**
**دا افــغــانــســتــان دی**
**داســي مــاشــومان زمــوږ**
**دا مــو د بــابــا وطــن**

**پر موږ باندې ډېرګران دی**
**دا افــغــانــســتــان دی**

(د استاد ملنګ جان خوږې نغمې)



## فعالیتونه:

ــ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته له ځان سره متن ولولي.

ــ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي، نوموړې ترانه دې په ښکلي غږ ووايي او نور دې وريسې تکرار کړي.

ــ څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، يو يو دې د (وطن، دادا، خاپوړو، زيبا، ماشومان، ګران) کلمې پرتختې په جملو کې وکاروي.

ــ که د زده کوونکو کومه بله ترانه په ياد وي، د ټولګي په مخ کې دې ووايي.

ــ څو زده کوونکي دې د خپل هېواد په اړه لنډې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| خاپوړې | هغه ماشوم چې په لاس او پښو ګرځي. |
| دادا | نيکه او پلار، مشر ورور |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې شعر په کور کې څو ځلې ولولي او بيا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط وليکي.

## خلوېښتم لوست

# مور او پلار ته لیک

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، او د لیک په گټو او ارزښت پوهېدل.







**پوښتنه:**

ـ تاسې کوم وخت مور او پلار ته لیك لیکلی دی؟

**گرانه پلاره او مهرباني مورې، السلام علیکم و رحمة الله وبرکاتهُ!**

**د دې لیک تر لیکلو روغ او جوړ یم. کلنۍ ازموینه مې پای ته رسېدلې، که د لوی الله ﷻ رضا وي، ستاسو د دعا په برکت به په دې نژدې شپو او ورځو کې کور ته راستون شم.**

**په درنښت**

**ستاسو د لیدو په هیله**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته د لوست متن له ځان سره ولولي.

ـ زده کوونکي دې يو بل ته د متن املا ووايي.

ـ زده کوونکي دې متن په ياد زده کړي او په خپلو کتابچو کې دې وليکي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د ليک د اړتيا په هکله دې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| ازموينه | امتحان |
| راستون | راګرځېدل |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې مور او پلار ته يو ليک وليکي او بله ورځ دې د نورو په وړاندې ولولي.

# غزني

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د غزني ولایت پېژندل.





**پوښتنې:**

ـ په پورته انځور کې څه وينئ؟

ـ د غزني ولایت په اړه مو څه اورېدلي دي؟

**غزني د افغانستان یو لرغونی ولایت دی.**

**غزني پخوا د افغانستان مرکز او د علم زانګو وه. په غزني کې ډېر لرغوني ځايونه، لکه: بالا حصار، د سلطان منار او داسې نور تاريخي ځايونه شته.**

**له همدې کبله په دې وروستیو وختونو کې د غزني ښار د اسلامي تمدن د مرکز په نامه ونومول شو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.
ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي د غزني په اړه دې خبرې وکړي.

ـ څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي یو بل ته دې له کتاب څخه څو کلمې د املا په توګه ووایي او نور دې پرتختې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د تختې مخې ته راشي د (غزني، افغانستان، آثار، منار، زانګو) کلمې دې په ساده جملو کې وکاروي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| لرغونی | پخوانی |
| تمدن | پیشرفت او ترقي |



## کورنی دنده:

زده کوونکي دې نوی لوست په کور کې څو ځلې ولولي او بیا دې په ښکلي خط په کتابچو کې ولیکي.

# وزلوبه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، د وزلوبې په هکله د معلوماتو ترلاسه کول.





**پوښتنه:**

ـ تاسو کله د وزلوبې ننداره کړې ده؟

**وزلوبه زموږ په هېواد کې یوه لرغونې لوبه ده. دا لوبه په لوی میدان کې ترسره کېږي. نوموړې لوبه د دوو سیالو ډلو ترمنځ د حلال له دایرې څخه پیل کېږي. په دې لوبه کې ګډون کوونکي له یوه ټاکلي ځای څخه وزه را تاووي، هرې ډلې چې وزه بېرته د حلال دایرې ته ورسوله، ګټونکې بلل کېږي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.
ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د متن يوه يوه برخه دې په لوړ غږ ولولي.

ـ زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځایونه په لاندينيو کلمو سره ډک کړي: (پيل، ډلو، لرغونې)
ـ وزلوبه زموږ په هېواد کې (          ) لوبه ده.
ـ نوموړې لوبه د دوو سيالو (          ) ترمنځ د حلال له دايرې څخه پيل کېږي.
ـ دا لوبه پّ لوی ميدان کې (          ) کيږي.

ـ يو زده کوونکی دې د (لوبه، ميدان، ګټونکی) کلمې پرتختې وليکي، نور دې په خپله خوښه په وار سره په جملو کې وکاروي.
ـ څو زده کوونکي دې د خپل کور، کلي يا ولسوالۍ د لوبو په اړه خبرې وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ګډون | اشتراک |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې نوی لوست په کور کې ولولي او بيا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط وليکي.

# د خوسي لوبه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د خوسي لوبې په هکله معلومات ترلاسه کول.





**پوښتنه:**

ـ تاسې د خوسي لوبې په هلکه څه پوهېږئ؟

**د خوسي لوبه زموږ په هېواد کې یوه سیمه ییزه لوبه ده چې د ماشومانو او تنکیو ځوانانو له خوا ترسره کېږي. دا لوبه د دوو مساوي ډلو ترمنځ سرته رسېږي. یوه ډله یې د ټوپۍ ساتونکې او بله یې د خوسۍ پلوي ډله وي. په دې لوبه کې یوه ډله غواړي چې ټوپۍ له منځه یوسي او بله ډله ټوپۍ ساتي. که چېرې هرې ډلې ټوپۍ په پرله پسې توګه ووهله او ونه سوځېده، د لوبې ګټونکې بلله کېږي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.
ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او په وار سره دې نومورې لوست د خپلو ټولګیوالو پر وړاندې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.
ـ زده کوونکي دې د (ټوپۍ، خوسی، مساوي او ګټونکې) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې استعمال کړي.
ـ څو زده کوونکي دې په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د نومورې لوبې په هکله دې خبرې وکړي.
ـ یو زده کوونکي دې  د متن یوه  جمله د املا په توګه ووایي او نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| **لغتونه** | **معناوې** |
|---|---|
| پلوي | طرفداري |
| تنکي ځوانان | نوي ځوانان |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د خوسي د لوبې په اړه څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# څلور څلوېښتم لوست

# اور

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د اور په ګټو او زیانونو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ ستاسې په فکر اور څه ګټې لري؟

**انسانان اور ته ډېره اړتيا لري. خلک په اور خواړه پخوي او په ژمي کې ورباندې ځانونه او کورونه تودوي. له اور سره لوبې کول ژوند ته خطر لري.**

**مور بايد د اور بلولو په وخت کې له ډېر احتياط څخه کار واخلو، اور اخیستونکي شيان لکه: تېل، ګاز او نور له اور څخه لرې وساتو چې ځان او کورونه سوځوو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي او د اور په ګټو او زیانونو دې خبرې وکړي.

ـ څو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي د: (اړتیا، خلك او خواړه) کلمې دې د تختې پرمخ ولیکي او څو نور دې په خپله خوښه پورته یوه یوه کلمه په جملو کې وکاروي.

ـ یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي، د متن یوه جمله دې نورو ته د املا په توګه ووایي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| بلول | روښانول |
| اړتیا | ضرورت |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست ولولي او بیا دې په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي.

پنځه څلوېښتم لوست

# پر حیواناتو زړه سوی

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، په ښارویو (حیواناتو) زړه سوی.





**پوښتنه:**

آیا ستاسو په نظر په ښارویو زړه سوی ښه کار دی؟

**یوه ورځ یو سړی په لاره تېرېده، ډېر تږی شو، له څاه څخه یې اوبه وڅښلې ګوري چې یو سپی ډېر تږی دی، له څاه څخه یې اوبه را وایستلې او سپي ته یې ورکړې، هغه یې له مرګ څخه وژغوره. لوی الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه سړي ټولې ګناوې د همدې زړه سوي له امله ور وبخښلې.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې متن په وار سره په لوړ غږ ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، د (سړی، ورځ، تږی، څاه) کلمې دې پرتختې ولیکي او څو نور دې یوه یوه کلمه په جملو کې وکاروي.

ـ څو زده کوونکي دې په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي په څارویو باندې دې د زړه سوي په هکله خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| ژغورل | نجات ورکول |
| څاه | کوهی |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست څو ځلې په کور کې ولولي او بیا دې په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## شپږ څلوېښتم لوست

# کار

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، د کار په ګټو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ په پورتني انځور کې څه وينئ؟

**ټولو کړو وړو ته کار ویل کیږي، لکه: درس ویل، د کور د کارونو سرته رسول، بزګري، ترکاڼي، سوداګریز کارونه او نور.**

**په کار کولو ژوند ښه او شتمني ترلاسه کیږي، نېک نوم او شهرت په کار کولو لاس ته راځي.**

**مور او تاسې باید کار وکړو، ترڅو ښه او ښکلی ژوند ولرو.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې متن په وار سره په لوړ غږ ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ یو زده کوونکی دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي، د (ژوند، کار او نیک) کلمې دې د تختې پرمخ ولیکي او نور دې په خپله خوښه یوه یوه کلمه په جملو کې وکار وي.

ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د تختې مخې ته راشي او د متن ځینې کلمې دې د املا په توګه ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| ترکاڼي | نجاري |
| شتمني | پانګه |
| سوداګریز | تجارتي |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست ولولي او بیا دې په ښکلي خط په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# لیک نښې

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، د لیک نښو پېژندل او په کارولو یې پوهېدل.





**پوښتنه:**

تاسو لیک نښې پېژنئ او کله مو په لیکنو کې کارولې دي؟

**ټکی (.): هغه نښه ده چې د پوره جملې په پای کې ایښودل کېږي، لکه: زه ښوونځي ته ځم.**

**کامه (،): هغه نښه ده چې د کلمو د بېلولو لپاره کارول کېږي. لکه: په افغانستان کې غنم، جوار، وریژې او اوربشې کرل کېږي.**

**سوالیه (؟): دا نښه د هغو جملو په پای کې راوړل کېږي چې پوښتنه پکې شوې وي، لکه: آیا تاسو خپله کورنۍ دنده لیکلې ده؟**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته نوی متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره متن په لوړ غږ ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.

ـ يو زده کوونکی دې (کامه، سواليه او ټکی) پرتختې وليکي او نور دې د لاندينيو جملو په مناسبو ځايونو کې وکاروي.

۱ ـ احمد ښوونځي ته ځي ( )

۲ـ زما په بکس کې قلم ( ) پنسل ( ) کتاب ( ) او کتابچه شته ( )

۳ـ ته چېرې ځې ( )

ـ يو زده کوونکی دې د (غنم، جوار، اوربشې) کلمې پرتختې وليکي او نور دې په خپل وار سره پورته کلمې په جملو کې وکاروي.

| **لغتونه** | **معناوې** |
|---|---|
| پوره | بشپړ |
| کورنۍ | فاميل |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن هغه جملې وليکي چې پورتنۍ ليک نښې په کې کارول شوي وي.

# کلمه

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل، د ساده کلمو په معنا او جوړښت پوهېدل.






**پوښتنه:**

ـ ستاسې په فکر کلمه څه ته وايي؟

**کلمه معنا لرونکي لفظ ته ويل کېږي، لکه: کور، قلم، کتاب، لاس، څوکۍ، ميز او داسې نور.**

**کلمه له تورو څخه جوړېږي، لکه:**

**ک ـ و ـ ر**

**ق ـ ل ـ م**

**ک ـ ت ـ ا ـ ب**

**م ـ ر ـ ی ـ م**

**څ ـ و ـ ک ـ ۍ**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته نوی لوست له ځان سره ولولي.

ـ زده کوونکي دې د (کور، کتاب، قلم او لاس) کلمې پرتختې ولیکي او نور دې په جملو کې وکاروي.

ـ زده کوونکي که د (کور) په کلمې کې د (ک) د توري پر ځای (ن) او د (قلم) په کلمه کې د (ق) پر ځای (ع) راوړل شي، کومې کلمې ترې جوړېږي.

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي د کلمې په اړه دې خبرې وکړي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| معنا لرونکي | معنا داره |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د (قلم، کتاب، لاس) کلمې په خپلو کتابچو کې په لنډو جملو کې وکاروي.

# ټوکه

**موخه:** د متن سم لوستل، ليکل او د ټوکې په مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه:**

آيا تاسو کله کومه ټوکه اورېدلې ده؟

**اتل: اجمله، پرون شپه ويده شوی وې؟**

**اجمل: هو، ښه خوب مې وکړ.**

**اتل: په خوب کې دې څه وليدل؟**

**اجمل: نه، په خوب کې مې څه ونه ليدل، ځکه چې زه په خوب کې سترگې پټوم.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او نومورې ټوکه دې نورو ټولګیوالو ته له یاده ووایي.

ـ که د اجمل په کلمه کې د (ج) پرځای (ی) همدارنګه که د خوب په کلمه کې د (ب) د توري پرځای د (ر) توری راشي، څنګه لوستل کیږي؟

ـ څو زده کوونکي دې د کتاب له متن څخه یوه یوه جمله د تختې پرمخ په ښکلي خط ولیکي او نور دې په کتابچو کې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي او یوه ټوکه دې ووایي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| پرون شپه | تېره شپه |



## کورنۍ دنده:

ټول زده کوونکي دې یوه یوه ټوکه په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

# جمله

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د جملې پېژندل.






**پوښتنه:**

ـ ستاسو په فکر جمله څه ته وایي؟

**د څو کلمو له یو ځای کېدو څخه چې بشپړه معنا ورکړي، جمله جوړېږي. لکه: زه ښوونځي ته ځم. زه له ښوونځي څخه کور ته راغلم. ګلالۍ له خپل ورور سره سبق وایي. افغانستان پر موږ ګران دی.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي پر وړاندې نوی لوست په مناسب غږ ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ـ یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي د (بشپړه، ښوونځي، افغانستان) کلمې دې پرتختې ولیکي او نور دې یوه یوه کلمه په تورو ووېشي.

ـ څو زده کوونکي دې له لاندینیو تورو څخه کلمې جوړې کړي.

- س ـ ب ـ ق ( )
- ګ ـ ر ـ ا ـ ن ( )
- و ـ ر ـ و ـ ر ( )

ـ څو زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي او د تختې پر مخ دې یوه یوه جمله ولیکي.

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| بشپړه | پوره |
| ګران | قدرمن، عزیز |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې څو جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

### یو پنځوسم لوست

# پاک خواړه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، د پاکو خوړو پېژندل او د هغو په ګټو پوهېدل.







**پوښتنه:**

ستاسو په فکر کومو خوړو ته پاک خواړه ویل کېږي؟

**پاک خواړه هغو خوړو ته ویل کېږي چې ناولي او ککړ نه وي، زموږ بدن ته زیان ونه رسوي. زموږ بدن پاکو خوړو ته اړتیا لري. سابه او مېوې مخکې له خوړلو څخه باید په پاکو اوبو ومینځل شي، همدارنګه له خوړو څخه مخکې خپل لاسونه په اوبو او صابون ومینځو، ځکه چې د ناپاکو خوړو او مېوو خوړل ناروغي رامنځته کوي. موږ ته په کار ده چې د ناپاکو خوړو له خوړلو څخه ډډه وکړو. خواړه باید په پاک ځای کې وساتل شي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د خپلو ټولګیوالو پر وړاندې دې متن په لوړ او مناسب غږ ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي یو دې بل ته د کتاب له مخې املا ووایي او بل دې پرتختې ولیکي.

ـ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، د پاکو خوړو په اړه دې د خپلو ټولګیوالو پر وړاندې خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| اړتیا | ضرورت |
| ډډه | ځان ساتل |
| ناولي | ککړ |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د مېوو ګټې

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، د مېوو په ګټو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ـ په پورتني انځور کې کومې مېوې وينئ؟

**د مېوو خوړل زموږ د بدن ودې او قوت ته ډېره ګټه لري.**

**هره مېوه بايد په پاکو اوبو ښه ومينځل شي. موږ بايد پاکې مېوې وخورو. د ناولو مېوو او نورو خوراکي شيانو له خوړلو څخه ډډه وکړو، چې ناروغ نه شو.**



## فعالیتونه:

ــ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.

ــ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د ځینو مېوو په اړه دې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

ــ یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي د (قوت، مېوه، ګټه، ناروغ) کلمې دې پر تختې ولیکي او څو نور دې یوه یوه کلمه په جملو کې وکاروي.

ــ یو زده کوونکی دې په خپله خوښه د تختې مخې ته راشي د (پاك، روغتیا، مېوه) کلمې دې پرتختې ولیکي او څو نور دې همدغه کلمې پر تورو وویشي.

ــ څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او نورو ته دې ووایي چې په هر فصل کې کومې مېوې پیدا کیږي

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| ناروغ | مریض |
| ناولي | ناپاك |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د ځینو مېوو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي.

## درېيم څپرکی پنځوسم لوست

# د چرګانو ساتنه

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، او د چرګانو د ساتلو په ګټو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ستاسو په فکر د چرګانو ساتل څه ګټې لري؟

**زموږ په هېواد کې ډېر خلک چرګې او چرګان ساتي، ځکه چې د هغوی له هګیو او غوښو ښه ګټه اخیستل کېږي. د چرګانو د ساتلو لپاره بېل ځای په کار دی. د دې لپاره چې چرګان ناروغه نشي، باید په ټاکلي وخت واکسین شي. د اوسېدو ځای یې پاک وساتل شي. د چرګانو خوړو او اوبو ته دې هم پاملرنه وشي.**



## فعالیتونه:

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته لوست له ځان سره ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د لوست په اړه دې خبرې وکړي.

ـ زده کوونکي دې په لوستل شوي لوست کې داسې کلمې پیدا کړي چې له درو او پنځو تورو څخه جوړې شوې وي.

ـ څو زده کوونکي دې د کورنیو چرګانو په اړه خبرې وکړي.

| لغتونه | معناوې |
| --- | --- |
| هېواد | وطن |
| ټاکلی | مشخص، معلوم |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې لوست په کور کې ولولي او بیا دې په خپلو کتابچو کې په ښکلي خط ولیکي.

## څلور پنځوسم لوست

# ملي شتمني

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل، د ملي شتمنیو  په مفهوم، ارزښت او ګټو پوهېدل.





**پوښتنه:**

ستاسو په فکر ملي شتمني څه ته وايي؟

**زموږ په هېواد کې ډېرې ملي شتمنۍ، لکه: ځنګلونه، سړکونه، بندونه  د قیمتي ډبرو، سرو زرو، سپینو زرو، سکرو، مسو، او د اوسپنې کانونه همدارنګه د تیلو او ګازو زېرمې شته. ملي شتمني پر ټولو خلکو پورې اړه لري. موږ ته په کار ده چې د ملي شتمنیو ساتلو ته پاملرنه وکړو.**



**فعالیتونه:**

ـ زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن له ځان سره ولولي.
ـ یو زده کوونکی دې په خپله خوښه د ټولګې مخې ته راشي د (مسو، تېلو او ګازو) کلمې دې د تختې پرمخ ولیکي او څو نور دې په جملو کې وکاروي
ـ یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي د (ځنګلونه، بندونه، سره زر، سپین زر) کلمې دې د تختې پرمخ ولیکي او نور دې همدغه کلمې د تختې پرمخ په تورو وویشي.
ـ څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي د ملي شتمنیو په اړه دې خپلو نورو ټولګیوالو ته معلومات ورکړي.

| **لغتونه** | **معناوې** |
| --- | --- |
| زېرمې | ذخیرې |
| شتمني | سرمایه، پانګه |